

# حقیقت انقلاب ثور

د افغانستان د خلك دیموکراتیك گوند د مرکزي کمیټې ارگان

د عقرب ۱۴
۱۳۵۹
5 NOV 1980
۲۷ گڼه
د تاسیس کال ۱۳۵۹




د شوروي اتحاد د کمونیست گوند د مرکزي کمیټې عمومي منشي د شوروي سوسیالیستي جمهوریتونو د اتحاد د عالي شورا د رئیسه هیات صدر ملگری لیونید ایلیچ برژنف او د ا.خ.د.گ. د مرکزي کمیټې عمومي منشي د ا.د.ج. د انقلابي شورا رئیس او صدر اعظم ملگری ببرك کارمل د رسمي خبرو په وخت کې

هغه وظیفې چې د تاریخ بهیر د افغانستان د خلك د دموکراتیك گوند په غاړه اچولې ستري او سختې دي خو موږ په سترویاړ سره دي ته چمتو یو د غه تاریخي وظیفې سرته ورسوو او په پوره میړانه او د اړه راتلونکې ته سترگې په لاره یو او د خپلې لارې حقانیت احساسوو او پوهیږو چې شوروي اتحاد او لنیني ستر گوند یعنې د شوروي اتحاد د کمونست گوند د شوروي اتحاد او د سوسیالستي ورونو هیوادو قهرمان خلك او ټول مترقي دولتونه او د سولې او ترقي غوښتونکي له موږ سره ملگري دي او په دغه ستر او تاریخي کار کې زموږ له گوند او زموږ له خلکو سره مرسته کوي. « ببرك کارمل »

په افغانستان کې انقلابي بهیر په شا نه ځي.

د افغانستان له زیار ایستونکو او د افغانستان له حکومت سره د شوروي سوسیالیستي جمهوریتونو د اتحاد او د نورو سوسیالیستي هیوادو او د ټولې نړۍ د مترقي قوتونو ملاتړ او پیوستون شته. موږ په غوښه توگه د دواړو هیوادو د امنیتي گټو د ساتنې په سنگر کې ولاړ یو او د افغانستان د خلکو او د افغانستان د حکومت په وړاندې به چې د ملگري ببرك کارمل له خوا رهبري کیږي خپل انترناسیونالیستي ماموریت د افغان، شوروي له تړون او د ملگرو ملتو د موسسې له منشور سره د پوره همغږۍ له مخې سرته ورسوو. « لیونید بریژنیف »

د پلچرخي د نساجي د فابریکې کارگره رحیمه:

## د شهیدانو سرې وینې د سمې لارې ښکارندوي دي

هغه ډېره زړه ښکې ده، چې پدې فابریکه کې کار کوي، ویښتان یې سپین شوي او کړوپه ملایې د زمانې د کړاوونو کیسې کوي غواړم ور سره خبرې وکړم او د زړه خوالو ته یې غوږ ونیسم.

کله چې پوهیږي غواړم د هغې سره وغږیږم د ماشین د شا څخه په ډېره خوښۍ زماخوا ته راښیږدي کیږي هغې خپله لومړنی زده کړه د لغمان په لومړني ښوونځي کې پای ته رسولې ده وایي موږ په چادریو کې ښوونځي ته تللو او د ښوونکو څخه مو درس لوسته زموږ خوټنو خپلې زده کړې د ناربنه وپه لیسه کې پای ته ورسولې مگر ما د کورني د تعصب له کبله او نشول کولی چې خپله زده کړه ته دوام ورکړم وروسته لدې چې د خپل کار او د ندې په هکله خبرې کوي خپل اساسي او غوره سوال مې داسې طرح کړ چې کوم انگیزې تاسو د ښځو دموکراتیك سازمان ته راوستلې؟ لږه په فکر کې لاهو شوه زه یې سر او ښښوته غلې غلې گورم د زړه والې گردیې په ویښتانو پریوتې دي او د ستر گو څنگونه یې گونځې گونځې شوي دي د مخ گونځې یې د لوږې تحطی تیرې، بې وزلې بې عدالتې د داستانو نو ښکار ندوي دي. هغه د زړه ښت دغم څپلې حالت سره سره د وطنپالنې ډك زړه او روښانه افکار لري.

د فکر په لوړوژوروکې خپله ماضي پلټي- کتل یې د خوشبینۍ او څلا څخه ډك دي وایي: د وینو دلیدلو څخه مې د غه ځای ته پناه راوړې ده، هغه وینې چې په خاوروکې توی شوي. دغه خواب لږ ماته تیاره دي.

کله چې یې د ترډ ډنیې په ماکې ولیدې وایې: په زړه دي چې توری ارتجاع عبدالرحمن څه ډول په لغمان کې شهید کړ. د عبدالرحمن د نوم په اوریدو سره مې زړه ولړزیده په غمجنې سره ورته وایم هوکې هغه مې په زړه دي.

د آزادی د لارې د شهیدانو نوم زموږ په زړونو کې هیشنې دي. په داسې حال چې خپل د گونځوډك لاسونه یې یوتر بله سره ومښل ویې ویل: ډیر کالو نه پخوا زما لور او زوی پدې سازمان کې غړیتوب درلود په پټه به یې زما او د هغه د پلار څخه په مظاهر واو میتنگو نوکې گډون کاوه. کله به چې موږ خبر شوو په دوی به په قهر شوو او کله کله به وهل کیدل هم. ځکه هغوی به چې هرڅو مره د دغه گوند ښه والې په هکله راته خبرې کولې مابه زیات حساسیت ښکاره کاوه. غلي کهږي او خیره یې لږه غمجنه گرځي وروسته له لږ څنډ څخه دیوه مجرم په توگه چې په خپل جرم اعتراف کوي وایې زویه! موږ فکرونه زاړه وله موږ څخه

د گیلې ځای نه وو.

کلي- کورنۍ له سر نه تر پښو پورې د تعصباتو په ځنځیر ونو تړلي وې له هر چانه موا وریدل چې ویل به یې هر څوك چې حز بې شي کافر دی. د دغې استدلال په وړاندې کولو سره خاندی او زه هم ورسره وخندیدیم ځکه چې په رښتیا دخنداوړده ورته وه ویل هو کې، د هغه وخت حکومتو نو د خپلو گټو او امتیازاتو د ساتلو لپاره زیاراېسته چې خلك په ناپوهي- بې سوادي او بې خبرې کې وساتي او یواځینی گوند چې د وگړو او زیارکښانو د گټو ساتونکی دی د خلکو په وړاندې داسې وښیې چې خلك د هغه څخه منفي انگیرنې وکړي.

هغوی یواځې د دین او مذهب تر کلمې لاندې زموږ خلك د بشریت د پرمخ تگ له کاروانه او هغې ته د رسیدو او نیږدې کیدو څخه په ډډه کې ساتل.

زیاتوی همدا سې ده اوزه ډېره خواشینې یم چې ځوانې مې ولې په پوچو فکرونو او د خلکو څخه لرې تیره کړیده اوس چې پرته له زړښت او ناتوانې څخه بل څه نه لرم په واقعیت باندې ایمان په بریالیتوب باندې ایمان او په ځلانده راتلونکې باندې ایمان مې په زړه کې ځای نیولې دی او افسوس کوم چې

(۲ مخ)

### پیغامونه او تلگرامونه

د ا.خ.د.گ. د مرکزي کمیټې د عمومي منشي د ا.د.ج د انقلابي شورا د رئیس او صدراعظم ملگري ببرك کارمل د مبارکۍ تلگرام په ځواب کې چې د بلغاریا د سوسیا لیستي انقلاب د شپږدیرشمې کالیزې له امله مخابره شوی و د بلغاریا د خلکو د جمهوریت د کمونست گوند د مرکزي کمیټې د لومړي منشي او د بلغاریا د خلکو د جمهوریت د دولتي شورا د رئیس تودورژیفکوف او د هغه هیواد د وزیرانو شورا د رئیس ستانکو تودروف له خوا د ملگري ببرك کارمل په نامه د مننې پیغام را رسیدلی دی.

په دې تلگرام کې هغوی ډاډ ترلاسه کړی چې د دواړو هیواد و د گوندونو او خلکو د دوستانه اړیکو او گټورو همکاریو پرمختیا په راتلونکې کې د نړۍ د سولې او ټینگښت په گټه زیاته ټینگه شي.

* * *

د الجزایر د الاصنام په ښار کې د زلزلې د کیدو له امله د افغانستان د خلك د دموکراتیك گوند د مرکزي کمیټې د عمومي منشي د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت د انقلابي شورا د رئیس او صدرالعظم ملگري ببرك کارمل د خواخوږۍ د تیلگرام په ځواب کې د الجزایر د خلکو د جمهوریت د جمهور رئیس جلالتمآب شاذلي بن جدید له خوا د مننې تیلگرام را رسیدلی دی.

(ب)

## گوندي خبرونه

زموږ دوست او گاونډي هیواد د شوروي سوسیالیستي جمهوریتونو اتحاد ته د ا.خ.د.گ د مرکزي کمیټې د عمومي منشي او د ا.د.ج. د انقلابي شورا د رئیس او صدراعظم ملگري ببرك کارمل د سفر له امله پرون له غرمې مخکې د مرکز د گارنیزیون د قوماندانانو، د رئیسانو او سیاسي کار کوونکو له خوا، او د ا.د.ج. د وسله وال پوځ د مرکزي قول اردو او فرقو د قوماندانانو او سیاسي آمرینو په گډون د ملي دفاع وزارت د کنفرانسونو په تالار کې پرتمینه غونډه شوې وه.

په دغه غونډه کې د ا.خ.د.گ د سیاسي بیرو غړي او د مرکزي کمیټې منشي او د انقلابي شورا د رئیسه هیأت غړي ملگري صالح محمد زیري د گوند د مرکزي کمیټې غړي، د انقلابي شورا د رئیسه هیات غړ ی او د ا.خ.د.گ د مرکزي کمیټې د دفاع او عدل د څانگې رئیس ملگري عبدالقادر هم گډون کړی وو.

* * *

شوروي اتحاد ته د افغانستان د خلك د دموکراتیك گوند د مرکزي کمیټې د عمومي منشي، د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت د انقلابي شورا د رئیس او صدراعظم ببرك کارمل د تاریخي سفر له امله د پنځمې گوندي ناحیې مربوط دارزاقو او سیلو گانو د لوی ریاست د لومړي سازمان له خوا په هغه ریاست کې ستره غونډه وشوه.

* * *

د کندهار ولایت گوندي فعالینو او کدرونو وړمه ورځ غونډه وکړه او د هغې په ترڅ کې یې په گوندکې د انضباط او دسپلین په باره کې خبرې اترې وکړې.

پدې غونډه کې له هغه وروسته چې د افغانستان د دموکراتیك جمهوریت ملي سرود خپور شو د کندهار د ولایتي کمیټې منشي او د گوندي ښاري، ولایتي او ناحیوي کمیټو څو تنو غړو په وار سره د موضوع په باب ویناوې وکړې.

غونډه په گوندکې د لازیات انضباط او دسپلین د ټینگښت په باب د پریکړه لیك په صادرولو سره پای ته ورسیده.

* * *

د اکتوبر د سوسیالیستي ستر انقلاب د دری شپیتمې کالیزې له امله وړمه ورځ د جنگلك کارخانو، افغان ترکاڼۍ، د فواید عامې وزارت د میخانیکي ریاست، د گذرگاه نساجي د کارگرانو او د کابل تخنیکم د کار کوونکو په گډون د کابل ښار د صنفي مرکزي اتحادیې د شورا له خوا د جنگلك د کارخانو په ریاست کې یوه ستره غونډه وشوه.

* * *

د اکتوبر د سوسیالیستي ستر انقلاب د دری شپیتمې کالیزې د نمانځلو له امله پرون د هیواد د یو شمیر کارگری موسسو له خوا یو لړ درندې غونډې وشوې.

په دغه لړ کې یوه درنده غونډه د کابل ښار شپږمې، اوومې او اتمې گوندي ناحیې په همکارۍ د افسرانو د عالي کورس د قوماندانۍ د منسوبینو له خوا د افغانستان د طبي علومو د اکادمۍ په ستر تالار کې وشوه.

(ب)

گران ملگري ببرك کارمل،
شوروي اتحاد ته له سفر څخه ستاسې د بریالي راستنید و مبارکي وایو

# دودې دلارې غوره کول او پرمختیایي هیوادونه

دو دې په حال کې هیوادو غونډه چې د نړۍ داوسیدونکو اکثریت بلل کیږي داقتصادي وروسته والي څخه دو تلواو په لنډه موده کې ټولنیز پر مختګ او سو کالي تـه درسیدو لهپاره او پدې خبره د ډاډ پیداکو لو لهپاره چـې ډیرې ښې نتیجې به په لاس ور شـي یـوا زې دو دې لاره پر مخکې لري او هغه هم په مترقي لورې غوره کو لو سره دډیمو کراتیکې ودې لاره. پهپر مختیا یي هیوا دو کـې دپانګه والي و دې لاره او د هغې دوام په اوسنيپړاو کې چې دسو لې کمپ دبشر ی تاریخ دټاکونکي عا مل بـه غوره کړې په تاریخي لحاظ لـه محکو میدو به تیرشو ، لـه وروسته والي څخه دد غـو هیوادو دو تلو او پر مختګ ته درسیدو ځواب نشيویلی. دغه لاره پهوروسته پاتې والي کې دوام او پاتې کیدو اوپـه نوی استعمار پورې زیـات مربو طیت او پیچلتیا تـــه رسیږي. او اقتصاديځپلواکي ته درسیدو لاره که چیرېدغه شـا ن خپلـوا کـــی دپانګه وا لی ودې دلارې پـه وهلو سره پیداشي لا پـسی اوږدهاو سختوي .

پدې ځای کې پو ښتنهپیدا کیږي چې د متر قی لور ی په غوره کولوسره دډیموکراتیکي ود ی لاره څه ده ؟ددغيپوښتني په ځواب کې باید وویل شي چې د غه لاره پهپر مختیا یي هیوادو کې د عا دلانه او لـه

استشمار څخه د خلاصيټولني جوړولو تهد تیریدو د عیني او ذهني لارو د تدریجيتکوین روند دی .

ددغې خبرې څرګندو ل تر ټولو مخکې دامانا لري چې دډیمو کرا تیکي و دې لا ره یوازې دپر مختیایي هیوا دو لهپاره چې دپانګه وا لې پړاو ته رسیدلي او یادهغه دودې لومړۍ پوړۍ وهـی مطر ح ده او له دغې لارې څخـه دډډه کولو مانالري . د غه راز په پورتني بیان کې د غه موضوع پوره په ډا ګه شوې چـــې د مترقي لورې په غوره کولو سره دډیمو کرا تیکي و د ی لاره د عالادنه او له استشمار څخه د خلاصي ټولنيدجوړولو لاره ده نه په خپله هغهدمترقي لوری په غوره کولوســره دډیمو کرا تیکيودې په پړا و کې چې د ټولنيږ په تاریخي تکامل کې پوره یوستراتیژیك پړاو احتوا کو ی یوازې لـه استشمار څخه متکا ملي ټولنـی ته دتیریدو لهپاره لاز ميلارې چارې شرایط او عینياو ذهني مقد مات بـه غوره کوی ا و پخیږي .

پدې پړاوکې دی چې پـه امپریالیزم پورې مربوطیـت پای تهرسو ل کیږي .

د خصوصي برخې پــــه وړاندې داقتصا د دو لتـــی او کو پرا تیفی برخيپیاو ړې کیږي . مو لد ځوا کـو نه او

صنعتي کار ګره طبقه تر ټاکلي سطحې پورې و ده کـــوي . دیمو کرا تیکي آزا دې تامین او په اقتصا دي، سیاسي او ټولنیز ژ وندانه کې دزیارکښو رول زیاتیږي او له استشمار څخه د خلاصي ټولنيدجوړیدو لهپاره دنورو لاز مو لاروچارو او مقدماتو بنسټ ایښو د ل کیـږي . دحاکمیت مسئله او سیاسي ستني دډیمو کراتیکي ودې دلارې یوه لیکې ییـــزه مسئله ده.

پدغه باره کې باید ټینګار وشي چې د فیو ډالي ضد او امپریالستي ضدد ټولو ملي او دیمو کرا تیکو ځوا کونـو دعمل دیووالي تامیناودپلارني وطن پهیوه ملي پرا خه جبهه کې د هغو راټولول حیاتـــي اهمیت لري .

کیدی شي د غه جبهه پـه آګا هانه ډول او لهپاسه پـه بیلا بیلو طبقو او قشرونــو پورې د مربوطو ساز مانونـو دائتلاف په وسیله د یوه ګـډ پرو ګرام په اساس جوړهشي او یا په خپله له ټیټ څخه له دغه شان ائتلاف څخه پر ته. کیدی شي وروستي حالت یا ددغه شان ساز مانونــــود نشتوالی اویا په هغو کېددرز او ټیټوالي په علت را منـځ ته شي . دد یمو کرا تیکي ودې دټولنیز و ستنو نه ورتهوالي لاچاره د پلارني و طن دپراخې جبهې په منځ کې دد غيلارې

دتکا مل په جریان کېټاکلي تضا دونه پیدا کوي . پد غـه شان حالت کې له چټکـــي ، ذهن اړولو او دځپلـی ارا دي له ټینګتیا سره له مخا مـــخ کیدو پر ته لازمه ده چـــي دروښانه لید، ډول ډول حـل لارې اود لا مناسبواومبتکرانه لارو چارو ښې ولټولې شي . دډیمو کراتیکي ودې لاره پـه خپل سر او په اوار واټ نه وهل کیږي بلکې د ار تجاع او امپریالیزم په خلاف په سخته او بې ا مانه مـــبارزه او د پرمختګ او ټولنیزې تر قـی په خاطر په اوږده او سختـه جګړه کې و هل کیږي .

دډیمو کراتیکي ودې پــه پړاو کې دټولنې ار ما نو نه انساني ، سپیڅلي او پهعیـن حال رښتینيا ر مانونه دي . سره ددې هم ددغو ار ما نونو ترسره کیدل د کورنیو پـــه شا تلو نکو ځوا کو نو اودنړۍ خور ا مپریالیزم له شریرا نه مقاو مت او حیواني دښمنـي سره مخامخ کیږي .

نو دغه مقاو مت ته بایدد پلارني وطن پهیوه پرا خـــه جبهه کې د ټولو مـــلي او دیمو کراتیکو ځوا کونو پـه زیاتوا لي او پهنړیوا لهسویه دځوا کونو لهنوی تناسبڅخه په اغیز مني ګټې ا خیستـــې سره چې ورځ پهورځ د ملتونو دآزادۍ ،سولې ،ټولنیزيترقي اوپر مختګ په ګټه بـدلو ن مومي ماته ورکړې شي .

## دافغانستان دانقلاب دوستان وایي :

**شك نشته چې په افغا نستان کې دامپر یا لیستا نو پوځي اوسیاسي لاس و هنې اوس هم رواني دي اوان دتیرو ځو او ونیـو په اوږدو کـيد ځینو هیوادو لخوا دغه لاس و هنـي زیاتي شویدې .**

دپراګ رودې پراوو ورځپا نـې ټینګار کړی دی چې په افغا نستان کې د شوروي اتحاد د پوځي محـدودو قطعاتو دشته والي یو ستر دلیـل همد غه دامپر یا لیستا نو لاسو هنې دي .

ورځپانې زیاتوی نه یوازې په افغانستان کې دانقلابي ضد عناصرپه وړانګارو عملو نو لاس پوری کو ی بلکې یو زیات شمیر بهر نی اجیران په امریکا یي، مصري ، پاکستا نـې چینا یي او آلماني پاسپور تو نوسره لد غو لارو هو نکو سره یو ځـای افغا نستان ته را ننوزي .

ورځپانې دغه راز یادونه کـړې چې د ثور انقلاب دښمنا نو پـــدې ورو ستیو و ختو کې د هغو هـــر اړ خیزو مر ستو په اصلي منبـــع باندې پردې اچولو ته څه پاملر نه نده کړې چې هغوی ته ورکول کیږي او آن دغه مو ضوع چې دانقلاب ضـد عنا صر له بهر څخه افغا نستان ته په زیا ته اندازه صادریږي نهپټوی . (ب)

**دځپلې خوښې رښتیني کار دهیواد دآبادۍ په لاره کې یو پتمنکار اوزموږ دهیواد والو دهیواد پالنې له روحیـــې څخه سر چینه اخلي .**

**(پدې عکس کې داځ.د.س. غــړی له ساختماني کار ګرانو سره د مرستې په حال کې لیدل کیږي .)**

۷

دلومړی مخ پاتې

## دشهیدانو سرې ویني ...

ولې مېدرې خلوروڅې دمخه واقعیت څرنګه چې ونه دی درك کړی خود عبدالرحمن په مړینې سره چې زموږ دستر ګو په وړاندې یې بندبندجلاګړ اوواټونه او کوځې یې دمغه په وینو سرې کړې دغه احساس په ماکېراپیدا شو اودهغيوختڅخهاوروسته دنادرې فاسدې کورنۍاو دهغوی ددولتيفاسدی دستګاه په وړاندې زمایه زړه کې کرکه راپیدا شوه او په ځانګړی توګه پههغه وخت کې چې زماځوان زوی دامیني جلا دانو په شکنجه ځایونو کې دهغوی دشکنجو په اثر خپل خوږ ژوند دلاسه ورکړ ما په هغه لارهچيګام پرېایښی وو پوره ډاډ پیدا کړ وایم دشهید عبدالرحمن ویني ستا لپاره دژونـــد دواقعیتونولارښوونکيشوې اوښلکېیېپه سترګو کې ځلیږي او په ناروغ ډوله ګوتو هغه پاکوي او وایي : هو که

داهم‌نه وای ښایې‌بله پیښه‌پیښه‌شوی وای او بله‌انګیزه به ددې سبب شوی وای .

وایي دځپل پروني‌استدلال له ترس څخه خجله یم تر پرون پورې زما په رګونوکې‌ددغه ګوند په‌هکله‌کرکي جریان درلود ځکه فکر مي‌کاوه چې دهغه لاره کږه‌ده .

خونن دهغو بې‌ګناهانودوینو په‌لیدو سره چې په واټونو ، کوڅواو غـــرو رغوکي ځلیږي پدې‌پوهیدم چې واقعي مسلمانان څوك دي .

آیا هغه څوك‌چې‌ښوونځي او کورونه سوځوي خلك وژني زاړه وګړي تړ ی ځواني او ښکلي پیغلي له ځانه سره

غرونوته تښتوي مسلمان دي ؟

هر چیرې چې ددغومرتدو ګام پورته شی هلته لو ږه او غریبي دوږی لیوه په څیرارګمي کاږي او هوا مسمومو‌ي.

پوښتنه تری کوم‌آیاتاسو به دښځو په دموکراتیك سازمان کې ترآخیره پاتې شي ؟ پداسې حال کې چې په ستر ګو کې‌یې داستقامت میراني او

ایمان بریښنا موجونه وهي په‌پریکړې اوغوڅه توګه یې وویل :

هوکي!زه‌به ددې سازمان سره‌دمرګ ترسلګۍ پورې‌ولاړه‌یم او دوینې تر- آخرینې څاڅکې پورې به له څپل هیواد او خلکو څخه دفاع وکړم همدا اوس

که ماجبهې‌ته‌ولیږي ددې خاورې‌دزړورو اوقهرمانانو زامنو په څنګ کې دیوې

مهربانې مور په څیراو یا دیوې خوږې خور په‌توګه اویادیوې مجربې پرستارې په څیربه دهغوی ټپونه مینځم خدمت

به‌یې کوم ډوډۍ به ورته پخوم اوبه‌او خواړه‌به ورته تیاروم .

که چیرې خدای مه کړه دوطن او

انقلاب ددوښمنانوڅخه‌ددوی په زړونوکې ویره پیدا شوه‌ددوی بلاربو اونیکونو هغه کیسې به ورته وکړم چې یوه ورځ تیر واولږګیویږینګیان له خپل هیواده شړلي وواو دملالي په څیربه هغوی په مور چلونو کې دپیغلي نوکرانو په وړاندې هڅوم .

دهغه داستدلال او رواني څیړو څخه ډیر خوښیږم اوورته‌وایم‌چې کاشکې‌ټولې میندې،ښځې‌او پیغلي ستاپه شان فکر وکړي اودهیواد اوخلکو دنیکمرغي په‌لاره کې په خورا زړه ورۍ او ټینګه توګه‌کامو نه پورته‌کړي لرم‌څخه‌واشیني کیږي اووایې زه همدې‌ته‌ځیږه اوزودیږم چې‌ولې مې پدې خوارلسو کالونو کښې په خورامینه او عشق‌سره کارنده کړې مایواخې ددوی دلاسته راوړلو لپاره مې دغه ماشین‌څرخاوه‌څکه ددوی پیدا کیدو بله لاره مې‌نه درلوده‌مې‌مي ډیر کالونه یخوا مړ شوی دی .

مګر اوس په‌زیاته مینه‌اوعلاقه سره کار کوم غواړم زیات تولید وکړم او زیاتې څولي توی کړم څکه اوس هر څه چې کوم دځپل ځان لپاره یې کوم او دخلکو لپاره‌یې‌کوم ،زمونږ‌ورځ دیرون ورځې په‌شان ډارونه ښځه نه‌یم نن‌ورځ مې زړه دیوی زمرۍ ښځې په څیربه سینه کې ټوپونه وهي دهغې ښځې‌په څیر چـــې د خلکو پـــه بریالیتوب ایمان لري‌اودایمان‌همدغو‌خلکو په‌ترڅ کې پیاوړی کړیدی .

له هغې څخه پوښتنه کوم که تاسو کومه ورځ ددغه ماشین شاته په ولاړو او کلدارو پلورل شوي غلو دیوه تن سره مخامخ شي څه به ورسره وکړی؟ پداسی حال کې‌چې‌ځیلی منګولې‌سترګو مخ ته نیسي په غرورسره وایي پدې منګولوبه دهغی‌سترګې‌داسې بې رحمانه راوباسم چې دټل لپاره په‌یوه کونج‌کې کښیني دډالرو او کلدارو رنګ یواځې په خوب کې ووینې وروسته په‌لوړ‌آواز خاندي او وایي چې‌آیا رانده خوبو نـه وینی ؟

پوښتنې ډیری لرم‌څوګورم چې‌وخت کم دی دغه ښځې‌دزړورتیا او شجاعانه خبرو څخه دزړه‌له‌کومي‌دخوښي احساس کوم کله چې دهغه څخه دتګ تکل‌کوم راته وایي دازماله خوا ټو لـــو ښځو غمجنو میندو او کوندې شوو ناووته

ولیکه چې بې خایه سو چونه ونه وهی او راځي‌چې‌دلته سره یو موټې شو هغه خه‌چې زمونږ دحقوقو څخه دفاع کولاي شي زمونږ‌دخاورې او دهیواددشهیدانو دسرو وینو څخه دفاع کولای شي همدا

دافغانستان دخلك دمو کراتیك ګوند دکارګر انو او ټولوزیار کښانو مخکښ ګوندی دی او بس .



## دهیواد دآبادۍ په لارکې

**دکندز دولتي مطبعه چې د هیواد دښمنانو او د انقلاب ضد عناصرولـه خواخرابه شوې اوله‌فعالیت نه لویدلي وه بیاجوړه شوه دعقرب په یوولسمه یې خپلې طباعتي چارې پیل کړې.**

**یوشمیر جنایتکاراودهیواد اوانقلاب تهخاین عناصر څه وخـت د شپـی لـــه خـــو ا مخکې د مـطبعـی دودانۍ انګړته ننوتي و او هغه یـی سیزلي وه چې دهغه له املهٔ دهغـی مطبعې دچاپ ما شینونه زیانمنشوي وو .**

**اوس د کندزددولتيمطبعي ماشینونه پهاساسي ډول ترمیم شوياو طباعتي چارې یې په عادي ډول رواني‌دي.**

**دیو بل خبرله مخي د هلمند ولایت دګرشك ولسوالي او د کندهار ولایت دمیوند د ولسوالي ترمنځد تیلفون‌مزی چې څه موده د مخه د انقـلاب ضد عناصرو له خوا په بیلابیلو برخوکې پرې شوی وبیا جوړ اود استفادې وړوګرځید.**

د هلمند ولایت یو خبر ځای وویل دتیلفون دغه مزی دتیپیتو کیلومترو په اوږدوالي د ګرشكولسوالي دخلکو دګوندي فعالینو د انقلاب د مدافعینود ډلو دوسله وال پوځدافرادو او دهلمند ولایت دمخابراتودمدیریت د منسوبینو دجدي کار او هلوځلوله امله پهدریو ورځو کې فعــال او داستفادې وړ ګرځیدلی دی . (ب)

# دستر اکتوبر

دنړۍ ټول مترقي بشریت ، دنیکي ارادې انسانان په دیوروځوکې پهپوره ویاړ سره د ستر اکتوبر د سوسیا- لیستي انقلاب ۶۳ کالیزه چې د شلمې پیړۍ لویه پیښه ده او دبشریت‌په تاریخ کې‌یې نوی دوران پیل کړی دی نمانځي .

۶۳ کالونه تر مخه د روسیـی کارګرانو او دهقانانو چې دبلشویکانو دګوند له خوا رهبري کیدل دفیوډالانو او پانګوالانو تسلط یې پای‌ته‌ورساوه اوقدرت یې پخپلو لاسوکې واخیست چې په دې ډول په تاریخ کې لمړنی سوسیا لیستي انقلاب بریالی شو.

دغه انقلاب د ځوپیړیو په استثمار اوظلم باندې غوڅ ګوزار وکړ اودنړۍ دنورو هیوادو نودخلکو پهوړاندېیېد سو سیا لیزم او ترقي لاره خلاصه کړله .

دبشریت په تاریخ کېډیر انقلابونه شویدي چې د ټولنیز ی ترقي پـه پروسه کېیې زیات رول لوبولیدی. ستراکتوبر د خپل خصلت او دځپلو تاریخي نتایجو له امله دهغو ترمنځ ځانته ځانګړی مقام‌لري .هغه دانسان پهوسیله دبل‌انسان استثمار تهخاتمه

ورکړه اوپخپله دزیار کښانو پهګټهیې دټولنې د نوی کیدو پیل وکړ .

داکتوبر انقلاب ، طبیعي ده‌چېلمړی دروسیې د ستونزو ، هغه ستونزيچې دتاریخ او مشخصو شرایطو څخه پـه

میراث پاتې وې حل کولې ولې د خپل اساس لهامله داهغه ستونزيوېچـې دټولنیزې ترقي د حرکت په وسیلهد ټول بشریت په وړاندې مطرح وې. ولې داکتوبر دانقلاب عظمت او نړیوال تاریخي اهمیت پهدې کې دیچې هغه ددغو ستونزو دحل لاره پهګوته کړه اوپه دې وسیله د ځمکې د کرې پهمخ دنوی ټیپ ټولنې د جوړولو شرایـط برابر کړل.

ستر اکتوبر داوښودله چې ټولنیز انقلاب هغه وختبرې ته رسي کله‌چې دهغه لپاره عیني شرایط چمتو شي.

د روسیې پرولتاریا دغه وظیفه پـه پوره برې سره سر ته ورسوله .هغه خپل جنګیالي مخکښيعنيد بلشویکانو

ګوند منځته راوړ، کوم‌چې وکړای‌شو سوسیالیزم د کار ګر ی غورځنګاو دپرګنوغیرآګاهانه نا خوښي سره یو ځای کړي .

داکتوبر تجربو همدارنګه داپـه ډاګه‌کړله چې حتی د مساعدو شرایطو دموجودیت باوجود کارګره طبقه‌یواځې دځپل مخکښ تر رهبر ی لاندې هغه مخکښ چې دپرګنو سره نږدې اړیکې ولري او دانقلابي مبارزې په ټولـو شکلونو آګاه و ی کولای شي سوسیا- لیستي انقلاب بریالیتوب تهورسوي .

داکتوبر انقلابدسیاسي قدرتساده بدلون نهو . دایوژور ټولنیزاقتصادي

بدلون و ، کوم چې وکړای شودخلکو دژوندانه ژوروځانګړ تیاوته متوجهشي اودروسیې د واقعیتهراړخیزه مسایل بيمطرح کړل. انقلاب کارګرې طبقيته دقدرت دانتقال په وسیله زیارکښان داستثمار څخه آزاد کړل دهغوپه واك کې یې موسسې بانکونه دریل پټلي ورکړې ، دهقانان یې دځمکې څښتنان او هیوادیې دامپریالیستي جنګ څخه وژغوره .

اکتوبر دبهرنۍ سیاست نړیوالـو اړیکو نوی اصول رامنځته اوپه غوڅه توګه‌یې په ټوله نړۍ کېدزیار کښانو دبرحقه حقوقو ددفاعاواستعمارې ،ملي ستم لاندې خـلکو دآزادۍ سنګریـی پیاوړی کړ.

داکتوبر دډیرو مشهورو ځانګړ تیاوو څخه یوهم پرولتاري انتر ناسیونالیزم دی چې دروسیې زیارکښانیې پهنړۍ کې دځپلو طبقاتيورونوسره پهټینګو- مزو وتړل .له همدې کبله داکتوبر بریالیتوب دپرولتاريانتر ناسیونالیزم دبرې سبب وګرځید.داکتوبر د انقلاب انترناسیو نالیستي خصلت، دهغهعالي انساني اهدافو په ځانګړيډول پهډیره ښه توګهدشوروي روسیېاوافغانستان

په مناسباتوکې انعکاس وموند .

ستر ا کتوبر د افغا نستان په نړیوال موقعیتکېژور بدلون راوست چې پهدې ډول زمو ږ د ملي دولتي

خپلواکۍ دلاس ته راوړلـو د پـاره مسا عد شرا یط چمتوشول . پههیواد کې د ملي ځوا کونودیځو نه پیاوړي او دهیواد پالني غورځنګ قوتوموند. شوروي روسیې د افغانستان د خلکو سره دآزادۍ ښوونکي مبارزې پهبری کې دوستانه مرسته وکړه کله چـــي افغاني هیوا د پالونکـــي دانګلیسي استعمار ګر انو په مقابل کې مبارزې ته راپور ته شو ل ځــوان شوروي جمهوریت چېدځوارلسو امپر یالیستي قدرتونو او کورني ضد انقلاب سره په مبارزه اخته و ، بیا یې هم وکړای شو چې د افغانستان د خلکو پهآزادۍ ښوونکې مبارزه کې فعاله ونډه واخلي اوزموږ له هیواد سره یې هغهوختد وسلې ، جنګي مهماتو ، پیسو مرسته ترسره کړه.

شوروي دو لت تر ټو لولمړي د ۱۹۱۹ کال د مارچ د میاشتې په۲۷ نیټه د افغانستان خود مختاری پــه رسمیت وپیژندلهاو ددېچمتووالي یې وښود چې ژرتر ژره د سفیرانو پــه سویه خپل استازي تبادله کړي. د ۱۹۱۹ کال دمې دمیاشتې په ۲۷نیټه ولادیمیرایلیچ لنین افغاني مشرانو ته لیکلي وو : «دثابتودیپلوماتیکو اړیکو ټینګښت لهامله ددوستروخلکوترمنځ دبهرنیو یرغلګرو له خوا د بل چاپه آزادۍ او ثروت باندېد هر ډول تیري

### سیاسي بحث

پهمقابل کې د همکارۍ او متقابلـــي مرستې پراخه امکانات منځته راځي» پخپله ژوند پهپوره ډول زموږ ددواړو هیوادونو تر منځ دواقعي ښه ګاونډ- یتوب اودوستانهمتقابلواړیکودټینګښت دعاقلانه او هوښیارانهبرخورد حقانیت په ثبوت ورساوه .

دنړیوال د ډیپلوماتیك بلو کاداو تجرید پهلهمنځهوړلو سره افغانستان

اود اکتوبر د انقلاب هیواد په متداومه اوهمیشني توګه دښه ګاونډیتـــوب همکار ی ته وده ورکړه او په دې‌ډول اقتصادي کلتوري منا سباتو ټینګتیا ومونده . د ۱۹۲۱ کال د فبرورې‌په میاشت کې‌دښه‌ګاونډیتوب او دوستی تړون د افغان،شوروي ترمنځ لاسلیك شو .

دطبقاتي مبارزې ټوله تجربه داپه ډاګه کوي‌چې انقلاب هغه وختاهمیت اوارزښت لري،کله چې هغه وکړیشي دځان څخه دفاع وکړي . دضد انقلاب اوبهرني مداخلې دموجودیت د بلوکاد سبوتاژ ، فیوډالي شورشونو پـــه

شرایطو کې د روسیې زیار کښانــو وکړای شو چې د انقلاب څخه د دفاع لپاره راپورته شي.دلینن تر مشرتابه لاندې په ډیره لنډه موده کې ثابتسور پوځ، نوی تیپ پوځ، هغه پوځ چـی

دزیار ایستونکو دغوښتنو او ګټو پـه سنګر کې ولاړ ؤ، هغه پوځ چــيد پرولتاري انتر ناسیو نالیزم داصولو پرآساس ولاړ دی ، تشکیل شو.

د کورنۍ او بهرنۍ ضد انقلاب پـه محوه کولو سره د شوراګانو د هیواد زیار کښانو د کمونیست ګوند تـر

مشر تابه لاندې په ډیر لوړ احساساو ټینګ عزم سره‌دنوی ژوند په جوړولو بوخت شول‌داډیره سخته او دکړاوونو

ډکه لاره وه . دسو سیالیزم جـوړول شوروي وګړو لپاره لهدې کبله همډیر سخت کار ؤ چې هغوی تر ټولو دمخه پهدې لار روان شول.هغوته دا امکان موجود نهؤ چې د چا څخه یې زده‌کړې

اوله تجربو څخه یې کار واخلي.

کالونه تیر شول او د شوراګانــو

هیواد قوي او صنعتي قدرت چې پر- مختللي کرهنه لري، وګرځید.

د شوراګـانو د هیواد صنعتـی

پوټانسیال د زیاتوالي لپاره وروستي

درې پنځه کالیزې ډیر اهمیت لريچې دهغو په جریان کې د کمونیسم د

جوړښت لپاره مادي ، تخنیکي بنسټ ایجاد شو، هغه څه چې په دې یوه

نیمه لسیزه‌کې تر سره‌شویدي د خپل عظمت لهامله دحیرانتیاوړدې.دصنعتي تولید حجم په وروستیوپنځلسو کالو- نو کـــی ۲٫۶واري زیـات شـو په هغو ساحو کې په کوموکې چې‌به زیاته اندازه علمي ، تخنیکي تـرقي لیدله‌کیږي دصنعت الکترو تخنیـك کیمیاوي او نفتي صنایعوپه برخه کې ۳٫۹ واري پورته شو .

دکلیو دآبادۍ او بدلون لپاره دلیـن دکو پراتیفي پلان دعملي کولو پهلاره کېډیر ستر کار تر سره شو دکرهني دکلکتیفي کولو،دتخنیك پراخه استعمال سوخوزونو (دولتي فارمونو) اوکلخو- زونو (دهقاني کو پراتیفونو) ته ددې امکانات برابر کړل‌چې زیاتو بریالیتو- بونوته ،په ځانګړي ډول وروسته د ۱۹۶۵ کال‌څخه‌ورسېد کرهنې‌دسکتور آساسي تولیدي حاصلاتو په ۱۹۷۹ کال کـې د۱۹۶۵ کـال پـه پرتله درې واري ز یـا تـو ا لـی و مونـدپـه اوسني پنځه‌کلن‌پلان‌کې دغنمو‌تولیدات په‌منځي توګه په شوروي اتحاد کې دوه سوه ملیونو ټنو ته رسي.

# بهرنی خبرونه: واقعیتونه، پیښی

## دهغو کسانو شمیر چی په پاکستان کی اعدامیږی له تصور څخه ډیر زیات دی

دبین المللی بخښنی سازمان پرون د پاکستان له جمهور رئیس ضیاالحق څخه وغوښتل چی ټول هغه سیاسی بندیان چی په هغه هیواد کی بندیان شوی دی خوشی کړی او دشکنجو وژنو او متروکوو هلو د له منځه وړلو په لاره کی سملاسی ګامونه پورته کړی .

دفرانسپرس د رپوټ له مخی په هغه سر خلاص لیك کی چی د بین ـ المللی بخښنی دسازمان له خوا د پاکستان د جمهور رئیس په نامه لیږل شوی او وړمه ورځ خپور شوی دی دغه سازمان د هغو بندیانو د مړینی په باب خپله ژوره اندیښنه څرګنده کړیده چی د پولیسو په توقیف کی له شکنجو ورکولو وروسته مړه شویدی .

دبین المللی بخښنی سازمان د پاکستان له جمهوررئیس څخه غوښتنه کړی چی ډیر ژر دغه موضوع ګانی تر تحقیق لاندی ونیسی او د دغو پیښو مسوول د پولیسو مامورین ونیسی .

د فرانسپرس د رپوټ له مخی د بین المللی بخښنی سازمان د پاکستان له حکومت څخه په کلکه غوښتنه کړیده چی د هغه هیواد داتباـ عو پر خلاف سپکاوی او په متروکو وهل منسوخ کړی .

فرانسپرس د پاکستان له مطبوـ عاتو څخه دلاس ته راغلو احصائیو په حواله یادونه کړیده چی پوځی محکمی د سږ کال په لومړنیو پنځو میاشتو کی لږتر لږه ۷٦ تنه د متروکو په وهلو محکوم کړیدی .

دغه سازمان ویلی دی دټاکلو جنایاتو په مقابل کی دلاس پریکول اوس هم په پاکستان کی تطبیق کیږی .

دبین المللی بخښنی سازمان څرګندوی د هغو کسانو شمیر چی په پاکستان کی چار ماری کیږی د تصور اندازی څخه ډیر زیات دی .

دغه سازمان د پاکستان له جمهور رئیس څخه چی په عین حال کی دهغه هیواد د پوځی حکومت رئیس دی غوښتی دی چی د هغو کسانو په عریضو باندی بیا غور وکړی چی پخوا په اعدام محکوم شویدی .

(ب)

## دملت ګټی، نه دانحصاراتو ګټی

دامریکا د کمونست ګوند په واشنګتن کی په یوی ستری غونډی سره خپلی انتخاباتی مبارزی پای ته ورسولی اود دغه ګوندله خوا دامریکا د جمهوری ریاست دمرستیالی کاندیدی انجلا دیویس په دی غونډه کی یوه وینا وکړه .

چی تی کا د دی وینا له مخی رپوټ ورکړی چی دبورژوازی دګوندونو کاندیدان په وفادارانه توګه د انحصاراتو او د پوځی صنایعو د مجتمع دګټو دفاع کوی.

دی ویلی چی یوازی دامریکا د کمونست ګوند پروګرام په ریښتیا سره درای ورکوونکو له ګټو سره برابر دی دغه پروګرام د ملت ګټو ته دلومړیتوب حق ورکوی نه د انحصاراتو ګټو ته .

دغه راز دغه پروګرام د پوځی لګښتونو د کمښت لپاره ځینی مطالب لری او دهغو له مخی هغه پیسی چی له دی لاری څخه سپما کیږی د هیواد داقتصادی ستونزو د حل لپاره به ولګول شی .

(ب)

## په مصر کی د نجونو سوداګری

په مصر کی یوه پټه ډله چی د نجونو سوداګری یی کوله کشف شویده دغی ډلی د کورنیو له بی وزلی څخه په استفادی سره د هغوی نجونی اخیستلی او په یو شمیر معامله کوونکو باندی یی پلورلی .

دغو معامله کوونکو دزیاتو پیسو دلاس ته وروړلو او له پولیسو څخه د خپل جنایت د پټولو لپاره زیاتره نجونی له مصر څخه بهر معامله کوونکو ته سپارلی.

د مصر خلکو ته پیدا شوی بدبختی اوولړه د سادات رژیم سوغات ده .

## امریکا غوښتل چی دناروغی لیږدونکی میاشی په شوروی اتحاد کی خوشی کړی

له هغو پټو سندونو څخه چی څو ورځی مخکی په واشنګتن کی خپاره شوی دی داسی معلومیږی چی دامریکا د دفاع وزارت د ۱۹۵۰ لسیزی له منځنیو وختونو څخه د یوی داسی نقشی په باب کار پیل کړیدی چی د هغی له مخی د شوروی اتحاد د خاوری یوه زیاته برخه د داسی میاشو تر برید لاندی راولی چی د زیړی تبه د ناروغی لیږدوونکی دی .

امریکا هڅه کړی چی په دغه خطرناك آزمایښت کی د هند پښه شریکه کړی .

دامریکا ددفاع وزارت د اپیدیمیکو ـ نو له لیږدونکو سره د مبارزی د لارو چارو د څیړنی په پلمه په ۱۹۷۵ کال کی د هاریانا په ایالت کی د سونی پات د ښار دپاسه ملیونونو دغومیاشو دخوشی کولو له پاره د هند د حکومت د اجازی د ترلاسه کولو په لټه کی شوی ؤ

دامریکا اصلی هدف په زیړی تبی د میاشو د یو زیات شمیر لرل او د شوروی اتحاد د خاوری د پاسه د دغی خطرناکی محمولی خوشی کول دی .

هندی پوهان چی دامریکا د دفاع وزارت غوښتل د هغوی پښه پدغی وحشیانه تجربه کی شریکه کړی ډیر ژر په واقعی هدف وپوهیدل اودهند مربوطی خانګی یی په موضوع باندی خبری کړی .

د میرمن اندرا ګاندی حکومت بی له ځنډه په هند کی دامریکا د دفاع دوزارت عملیاتی پلان ویټو کړ .

دامریکا د خطرناکو تجربو څخه یوه هم د همالیا په سیمو کی د ۱۹٦۰ کال په لسیزه کی دیوی اتومی وسیلی جوړول دی چی هدف یی د هند له ګاونډیو هیوادو څخه د جاسوسی داطلاعاتو ترلاسه کول ؤ وروسته بیا دامریکا پوځی ماهرانو دغه وسیله له لاسه ورکړه .

هغه رادیو اکتیف چی ددغی وسیلی دله منځه تللو په نتیجه کی منځ ته راځی کولی شی ۰ نن هم دهند پراخی له وګړونه ډکی سیمی متاثری کړی۰

(ب)

## له تیلی تایپ څخه

### دامریکا تورپوستی د کار دناوړه شرایطو قربانیان دی

دناوړو کارونو د سر ته رسولو لپاره دامریکا یی تورپوستو استخدام او هغوی ته د لږی تنخا ورکولو خطرناك حالات پیدا کړیدی .

د چی تیکا خبر وایی له سپین پوستو کارګرانو پرته کارګران د کار د منفی شرایطو له پلوه پرله پسی په ډول ډول رنځونو اخته دی اوهم هغوی له هغو پیښو څخه قربانیږی چی د کار په وخت کی پیښیږی۰

درسمی احصائیی له مخی تورپوستو له سپین پوستو سره د پرتلی له مخی د خپل کار قابلیت له لاسه ورکړی او په دی وروستیو وختوکی په سلو کی پنځلس تور پوستی امریکا یی کارګران د دغو رنځونو اوپیښوله امله دکار کولو توان له لاسه ورکړید .

(ب)

### دامریکا په کارګری اتحادیو کی اختلاف

دامریکا د متحدو ایالاتود کارګری اتحادیی دغورځنګ دلیکو او غړیو او ددغو اتحادیو د ارتجاعی مقاماتو تر منځ بیلوالی ورځ په ورځ زیاتیږی.

په کالیفورنیا کی د کارګری اتحادیی د څانګی رئیس په دغه ټکی اعتراف کړیدی .

دا کومه ناڅاپی خبره نده چی د امریکا د متحدو ایالاتو د کارګری اتحادیو غورځنګ په زیاتیدونکی توګه خپل دریځ له لاسه ورکړی او یوازی په کالیفورنیا کی په دیرشو کالونو کی په کارګری اتحادیو کی د تنظیم شویو کارګرانو شمیر په سلو کی اوولس کم شوی دی .

دامریکا د کارګری اداری داحصائیو له مخی په هغه هیواد کی په اتحادیو کی یوازی په سلو کی نهه ویشت کارګران تنظیم شویدی .

(ب)

## دمغزونو تیښته

(دوهمه برخه)

دانکتاد له اټکلونو څخه څرګندیږی چی د ۱۹۷۰ لسیزی په نیمایی کی په سلو له ۵۰ څخه تر شپیتو پوری پاکستانی ډاکټران له دغه هیواد څخه وتلی دی .په دغه موده کی له فلیپین څخه په سلو کی (۱۱) انجنیران او علمی شخصیتونه او په سلو کی (۲۱) ډاکټران له دغه هیواد څخه تللی دی .

د ۱۹۷۱ او ۱۹۷٤ کلونو تر منځ له ټولو سریلانکایی ډاکټرانو او انجنیرانو څخه چی پدغه ځای کی په کاربوخت و په ترتیب سره په سلو کی (۲۰) او په سلو کی (۱۹) نورو هیوادو ته تللی دی .

د ۱۹۷۰ لسیزی په لومړیو هیوادو کی سوریی او ایران په ترتیب سره په سلو کی (٤۰) او په سلو کی (۳۰) خپل ډاکټران د مغزونو ددغی تیښتی له امله له لاسه ورکړی دی .

له ۱۹٦۱ کال څخه تر ۱۹۷٦ کال پوری د آسیا، افریقا او لاتینی امریکا له پرمختیایی هیوادو څخه ټول ٦۰۰ زره ډاکټران او ۱۰۰زره انجنیران او سیانس پوهان دامریکا متحدو ایالاتو ،کانادا او انګلستان ته تللی دی .

دمغزونو تیښته په یوشمیرهغو پوهانو باندی چی په خپل هیواد کی پاتی کیږی ناوړه اغیزه کوی . له دوی سره د خلکو د سرنوشت په وړاندی اود خپل هیواد دټولنیزی او اقتصادی پرمختیا په وړاندی د بی توپیری احساس پیدا کیږی

او دغه اغیز ددغو هیوادو له پاره زیاتی ستونزی پیدا کوی .

داسخته ده هغه تاوان په غور سره وسنجول شی چی داستعدادونو د تیښتی له پلوه دنویو خپلواك شویو هیوادو اقتصاد ته رسیږی .

دانکتاد داټکل له مخی له ۱۹٦۱ کال څخه تر ۱۹۷۲ کال پوری امریکا، کانادا او انګلستان، ته داستعدادونو ددغی تیښتی له امله رسیدلی تاوان ۳۰۰ر ٤۲ ملیونو ډالرو ته رسیږی .

نو له دغی مسئلی څخه رسیدلی تاوان د هغو«مرستو» اندازه بی اغیزه کوی چی پرمختیایی هیوادو ته د دوی دپانګه والو «خیر غوښتونکو» له خوا ورکولی کیږی .

امپریالیستی ځواکونه د پرمختیایی هیوادوداستعدادونو په لوټولو سره هغه پریمانه پیسی سپموی چی بایدد خپلو هیوادو د ماهرو کارګرانو په روزنه یی ولګوی . دمثال په ډول دامریکا او انګلستان هیوادو داویایمی لسیزی په لومړی وختو کی د پرمختیایی هیوادو دطبیبانو دجلبولوله لاری خپل طبی پرسونل په ترتیب سره په سلو د ۵۱ او ٤۰ په اندازه زیات کړ. دپانګه والو هیوادو له پاره له پرمختیایی هیوادو څخه د مغزونو د تیښتی بله ښیګڼه داده چی ددغو ماهرانو او پوهانو اکثریت په ځوانی کی دغو هیوادو ته ورځی . له دی امله د ۱۹٦۰ لسیزی له پیل څخه د ۱۹۷۰ لسیزی تر نیمایی پوری د هغو ډاکټرانو

په سلو کی پنځوس چی له پرمختیایی هیوادو څخه امریکا ته تللی دی له څلویښتو کالو څخه دکم عمر خاوندان دی . په ۱۹۷۰ کال کی په سلو کی نهه څلویښت هغه انجنیران او سیانس پوهان چی امریکا ته یی کډه کړیده له دیرشو کالو څخه او په سلو کی ٤٦ د دیرشو او شپږ څلویښتو کالود عمر خاوندان دی .

له نویو خپلواك شویو هیوادو څخه د مغزونو د تیښتی مسئله دی اندازی ته رسیدلی چی ددغو ستونزو دټاکلو اړخونو له څیړنی سره یی د ملګرو ملتو د ځینو سازمانو له دغی جملی څخه دانکتاد، یونسکو ،دکار د بین المللی سازمان او دنړی دروغتیایی سازمان مینه پیدا کړیده . په ۱۹۷۸ کال کی یوازی انکتاد یو ځل دمغزونو دتیښتی مسئله د دولتی ماهرانو دډلی دغونډو په اډانه کی او بیایی د تکنو ـ لوژی دانتقال په کمیټه کی مطرح کړه . پدی ترځ کی د مغزونو د تیښتی پیښه په ۱۹۷٦ کال کی داستخدام، دعاید دویشس، ټولنیزی ترقی اود کار دبین المللی ویشس په باره کی په نړیواله جرګه کی ،دانکتاد په پنځمه غونډه او په ۱۹۷۹ کال کی د سیانس او تکنالوژی په باب دملګرو ملتو په جرګه کی هم مطرح شوه . پدغو بین المللی غونډو کی د نویو خپلواك شویو هیوادو وینا کوونکو د اقتصادی بین المللی غیر عادلانه مناسباتو له عمومی ستونزی سره چی دامپر ـ یالیستانو له خوا تپل شوی د مغزونو د تیښتی د مخنیوی دموضوع د ارتباطه په باب قانع کوونکی دلیلونه وړاندی کړل . شوروی اتحاد او نورو سوسیالیستی ټولنو چی له نویو خپلواك شویو هیوادو سره د ښوونی او روزنی سیستم ته دسازمان ورکولو، دښوونځیو اود لوړو تعلیماتو دموسسو د جوړولو او سمبالتیا په کار کی یی زیاتی مرستی کړیدی دمغزونو د تیښتی دمخنیوی په باب ددغو هیوادو د غوښتنی پوره ملاتړ وکړ . په تیرو لسو کلونو کی سوسیالستی هیوادو دآسیا افریقا او لاتینی امریکا د ځوانو دولتونو له پاره په بیلا بیلو څانګو کی ۰۰۰ر٤۰ ماهران روزلی دی .

همدا اوس د پرمختیایی هیوادو څه دپاسه ٤۰۰۰۰ تنه محصلین په سوسیالستی هیوادو کی په زده کړه بوخت دی . دسوسیالستی هیوادو په مرسته په نویو خپلواك شویو هیوادو کی ۳۲ د لوړوتعلیماتو موسسی او تخنیکی ښوونځی ۱۲۰ د ښوونی مرکزونه او مسلکی ښوونځی جوړ او سمبال شویدی . او ۷۰ د ښوونی او روزنی موسسی د جوړیدو په حال کی دی . شوروی اتحاد پدغه مرسته کی ستر رول لوبوی . شوروی اتحاد په دغو هیوادو کی د یوسلو دیرشو تعلیمی موسسو ودانی بشپړی کړی او د شوروی اتحاد په مرسته پدغو هیوادو کی څلور شپیته تعلیمی پروژی د جوړیدو په حال کی دی .

(پای)

## مشال

دیوه نسل د ژوندانه په دوران کی دشوراګانو هیواد په غوڅه توګه د بیسوادی له مرض څخه ځان‌وژغوره. زیارکښان د کلتوری ژوند فعال ګډون کوونکی او دروحی ارزښتونو ایجاد ـ وونکی وګرځیدل . دخلکو د پرګنوله منځ څخه شوروی روښانفکران راپورته شول کوموچی داکتوبر هیواد دعلم‌او تخنیك ادبیاتو‌او هنر په‌لوړو ارزښتونو باندی سمبال کړ دزیار‌او کلتور یووالی تامین شو دکوم آرزو چی د بشریت ډیرو ښوفکرونو درلوده .

داکتوبر دبریواو ارزښتونو په‌لړ‌کی دملی مسالی حل‌ځانته ځانګړی مقام لری چی د بشریت‌په‌تاریخ کی ترټولو څخه پیچلی او ډراماتیکه مساله ګڼل کیده .

داکتوبر د انقلاب‌بریالیتوب په عین وخت‌کی د ملی آزادی ښځونکی‌مبارزی بری هم ګڼل کیږی . اکتوبر‌چی‌دتزاری روسیی د «خلکو جیل خانه» ړنګه‌کړه دهیواد ټولو خلکو، ملی لږکیو ته‌یی آزادی له ځانه سره راوړه .

اوس ټولی نړی ته دلنین د ملی سیاست نتیجی جوتی دی. د شوروی اتحاد ټول ملیتونه او ملی لږکی دغوړیدنی په‌لاره روان‌دی چی‌داقتصاد کلتور په ډګرونوکی یی زیات بریا ـ لیتوبونه ترلاسه کړی‌دی. سو سیا ـ لیزم دپرمختګ داسی محرکه قوه فعاله کړه لکه دخلکو دوستی واقعی آزادی ښځوته ، اکتوبر له‌ځانه سره‌راوړه‌هغو دپرمختګ لپاره پراخه امکانات ترلاسه کړل چی کولای شی په آزادانه توګه خپل خلاقیتونه او استعدادونه په‌کار وګماری اوپه فعاله‌توګه ددولت داداری په کارونوکی ونډه واخلی .

داکتوبر انقلاب د خلکو دژوندانه‌د غوښتنو لپاره،دزیار کښانو د نیکمرغی اوخوښی لپاره بری ته ورسید

کولای شو یو کوچنی‌مثال ذکر کړو اوس په شوروی اتحاد کی د نړی د هربل هیواد څخه زیات داوسیدنی کورونه د زیار کښانو لپاره آبادیږی.

د شوروی اتحاد او سوسیالیستی پیوستون بریالیتوبونه‌په‌عمومی صورت داوسنی دوران برجسته انقلابی بری دی دستراکتوبر بیرغ دادسولی او د خلکو د دوستی بیرغ دی .داکتوبر په بری سره په بین‌المللی ډګر کی‌د لمړی ځل لپاره داسی دولت جوړ شو کوم‌چی دسولی شعار وړاندی اودنورو هیوادونو سره یی دمتقابلو مناسباتو دنوو اصولو په عملی کولو پیل وکړ. دشوروی اتحاد د کمونست ګوند او شوروی دولت چی‌د هغو خلکو په پلوی یی کوم چی دستم اوتیری‌په‌ضد دآزادی او ټولنیزی ترقی لپاره جنګیږی او د امپریالیزم عملیاتوته غوڅه‌ماتی ورکوی ولاړ دی ،چی ددی په‌ځنګ‌کی دسولی اونړیوال امنیت دمختلفو ټولنیزسیستم لرونکو هیواد ـ ونو ترمنځ د سوله ییز ګډ ژوند لپاره ټینګه او فعاله مبارزه کوی .

داکتوبر هیواد همدارنګه د پخوانیو مستعمره او نیمه مستعمره هیوادونو ملی او ټولنیزی آزادی د ځواکونود انترناسیونالیستی غرض په اساس هراړخیزه مرسته د شوروی اتحاد او ځوانو پرمختلونکو دولتونو ترمنځ اړیکی پراختیا مومی .

هیڅ یو داسی واقعی آزادی ښځونکی غورځنګ نه ـ شته دکوم سره چی به شوروی خلکو خپل پیوستون او همبستګی نه وی ښودلی .

ولی بین‌المللی‌امپریالیزم هراړخیزی هلی ځلی کوی چی د جنګی قوی په ګواښ، اقتصادی بلوکاد، داجیرانو د نفوذ، دنړیوالی دښمنی په ایجاد،زړو استعماری میتودونو سره د ملی آزادی ښځونکو غورځنګونو مخه ونیسی . له همدی کبله‌دپخوانیو مستعمره او نیمه مستعمره هیوادونو خلك په ډیره هوښیاری سره د امپریالیستی تیریو اوتلاشونو په مقابل کی هوښیاری ساتی،هغو ټول تیری اولاس وهنی‌چی دهغو هیوادونودملی‌خپلواکی اواستقلال پرضد کیږی په‌غوڅه توګه په‌شاتمبوی ددی ډیره ښه او برجسته نمونه افغانستان دی .

دافغانستان د دیموکراتیك جمهوریت دانقلابی ودی لارچی زموږ دخلکو له خوا غوره شویده او د نوی آزاد ژوند دمنځته راوړولو لپاره د هغو هلی‌ځلی په ښکاره سره د امپریالیزم دناخوښی سره مخامخ شولی.دافغانستان پرضد نااعلان شوی جنګ پیل شو، زموږ هیوادته د بهرڅخه په زرګونه اجیران داړه ماران، ایجنټان چی په خارجی وسله سمبال او د بهرنیو مربیانو له خواروزل شوی وو رانوتل، دښمنانو دځان سره دامحاسبه درلوده چی د ثور انقلاب ناکام، په وحشیانه توګه د ۱۰خ۰د۰ګ غړی او نور هغه څوك چی په صداقت‌سره د مترقی بدلونونو پلویان دی له منځه یوسی .

ولی دغه جنایت کارانه او ناوړه پلانونه شنډ شول ۰ د ۱۹۷۹ کال د دسمبر د میاشتی په ۲۷ نیټه د ګوند سالم‌هیواد پالونکی ځواك ،چی دخلکو دارادی نمایندګی کوی، انقلاب ته‌یی نجات ورکړاو د حفیظ الله‌امین خونړی رژیم‌یی نسکورکړ. دانقلاب دبشپړنیا دوهمه مرحله‌دهیواد، خلکو او انقلاب دخلاصون پړاو پیل شو .

د افغانستان د خلکو لپاره په دغه حساسه تاریخی لحظه کی، کله چی زموږ هیواد د امریکا د خونړی امپریا ـ لیزم او د هغه د مرتدو چینایی اونورو امپریالانو د مستقیم تیری تر ګواښ لاندی واقع و، شوروی اتحاد زموږ څخه مادی‌اونظامی‌مرسته ونه سپموله.

داکتوبر هیوادد افغانستان د دیمو ـ کراتیك جمهوریت‌د اقتصادی ودی په لاره‌کی ډیرمهم‌رول لوبوی. دافغانستان په‌خاوره کی د دغی بیغرضانه مرستی ډیری مهمی نمونی لیدلای شوچی زموږ دهیواد ملیونونوشریفووګړوته جوتی‌دی

په افغانستان کی د ملی او دیمو ـ کراتیك انقلاب په‌بری سره په‌خانګړی ډول دهغه دتکامل په‌دوهم پړاو کی دافغانستان د دیموکراتیك جمهوریت او شوروی‌اتحادترمنځ‌عنعنوی دوستانه اړیکو دریښتونی وروروګلوی اوانقلابی پیوستون خصلت‌غوره‌کړی دی‌ددی‌ښه بیلګه مسکوته د ملګری‌ببرك کارمل‌په مشری دګوندی‌اودولتی لوړ رتبه هیات تاریخی سفر دی دافغان اوشوروی مشرانو تر منځ‌خبری‌اتری‌او دکریملین په‌ماڼی کی دسندونو لاسلیك زموږ د هیوادونو د دوستی او همکاری په تاریخ کی ځلانده پاڼه تشکیلوی.

دشوروی اتحاددکمونیست‌ګوندمرکزی کمیټی عمومی منشی لیونید ایلیچ بریژنف وایی «په افغانستان کی انقلابی پروسه پرشانه تلونکی ده،د افغانستان د خلکو او د هغو دحکومت سره دشوروی اتحاد پیوستون ملګری دی ... موږبه دخپلودواړو دولتونود امنیت له ګټوڅخه په غوڅه توګه دفاع وکړو او د افغانستان د خلکو او حکومت په وړاندی به‌چی په سرکی‌یی ملګری ببرك کارمل‌دی‌دافغان ،شوروی دترون او ملګرو ملتو د منشور سره په پوره ،تطابق کی خپل انترناسیونا ـ لیستی فرض سرته ورسوو»

مسکوته دملګری ببرك‌کارمل‌سفرددی امکانات برابر کړل چی د۱.د۰ج او شوروی اتحاد د ترمنځ د دوستی او وروروګلوی اړیکی لاټینګ دمتقابلی ګټوری همکاری ساحه زموږ ددواړو سترو خلکو له پاره پراخه شی .

دافغانستان دموکراتیك جمهوریت د حساسو پړاونو څخه تیریږی هیواد دکلونو وروسته پاتی والی څخه رابیدار او داساسی انقلابی ټولنیزو اقتصادی تحولاتو مرحلی ته شامل شویدی . دزړو ټولنیزو مناسباتو او خرافاتو لمن‌ورځ په‌ورځ راټولیږی‌اونوی جوړښت قوت مومی موږ ددی ویاړلرو چی‌د ثور انقلاب دلاسته راوړنو د دفاع لپاره پخپله مبارزه‌کی د اکتوبر دهیوادټینګ ملاتړ زموږ سره‌ملګری دی۰ د شوروی اتحاد سیاست د افغانستان سره د دوستی په ډګرکی دپرولتاری انترنا ـ سیونالیزم ډیره روښانه او غوره‌نمونه ده ۰دشوروی‌اتحاد دورور ګلوی‌مرستی زموږ د خلکو سره چی د انقلاب په لاره د وروسته پاتی والی څخه دترقی په‌لور روان دی د دغه غوره اصل‌پر اساس دی ۰

ملګری ببرك کارمل مسکو ته دخپل سفر په ورځوکی دشوروی مشرانوسره دخبرو په ترځ کی وویل : «کلونه او پیړی به تیری شی دافغانستان‌خلك به‌نوی ،عادلانه ټولنه جوړه کړی۰ولی هغوی به همیشه د خپل ورور او ریښتونی دوست د شوروی اتحادله خلکو څخه دهغه‌هیواد له‌خلکو څخه چیرته چی د شلمی پیړی اساسی پیښه داکتوبر ستر سوسیالیستی ،انقلاب سرته ورسید ـ ممنون وی»۰

# دانقلاب څخه ددفاع په لاره کې

د سمنگانو ولایت دخلم د ولسوالي روحانیونو او سپین ږیرو وړمه ورځ دبلخ ولایت په سالون کې د یوی غونډې په ترڅ کې د هغې ولسوالۍ د خلکو په نمایندګی دامنیت دتامین‌او دخپل ملی او مترقی دولت د مترقی‌او عام‌المنفعه پلانونود تطبیق په لاره کې خپل رښتینی خدمتونه او له ځانه تیریدنې څرګندی کړې .

پدی وخت کی یو گوندی مسوول ددولت د پلانونو د تطبیق او د ثور انقلاب د دښمنانو دله منځه وړلو په کار کی دسمنگانو ولایت دزیارکښو خلکو د رښتینی او نه ستړی کیدونکی همکاری قدردانی وکړه .

* * *

دثور انقلاب او د هغه د ارزښتونو ددفاع له امله وړمه ورځ د بدخشان ولایت د کشم‌په‌ولسوالی کی د انقلاب دمدافعینو ډله‌دهغی ولسوالی په مرکز کی دیوی غونډې په ترڅ کی جوړه شوه .

دغونډې په پیل کی د هغه ولایت یوگوندی کدر زمونږ دهیواد اوخلکو ددښمنانو په له منځه وړلوکی دانقلاب مدافعینو اهمیت او رول څرګند کړاود هغه ځای له منورینو او ځوانانو نه‌یی وغوښتل د انقلاب د مدافعینو په ډلو کی په‌راټولیدوسره‌دانقلاب ضدعناصرو په وړاندی خپلی له قهرمانی نه ډکی مبارزی سختی کړی .

وروسی د هغی ولسوالی د انقلاب‌د مدافعینو د ډلی دووتنو غړیو دنوروپه نمایندگی تیاری وښودچی دخپلی‌وینی دوروستی ځاځکی‌تر تویو لو پوری‌د هیواد او انقلاب د دښمنانو په‌ضد مبارزی کوی او هغوی له منځه وړی .

* * *

دکندز ولایت زیات شمیر عالمانو، روحانیونو ، د جوماتونو امامانو او سپین ږیرو پرون دکندز دسپین زرپه کلوپ کی په یوه غونډه کی د انقلاب ددفاع او د انقلاب له دښمنانو سره‌د مبارزی لپاره خپل هرډول تیاری‌څرگند کړ .

پدی وخت کی یوتن گوندی مسوول دخلکو د آرامی اودگران هیواد دودانی په‌غرض دگوند او انقلابی دولت لوړاو انسانی هدفونه څرگند او د انقلاب ددښمنانو خا ئینانه عملو نه یی رسوا کړل .

په مقابل کی ځوتنو حاضرینو د کندز ولایت د عالمانو ، روحانیونواو سپین ږیرو په نمایندگی د انقلاب د دښمنانو د بیخی له منځه وړلو په‌لاره کی خپل غوڅ تیاری وښوده‌اودانقلاب دانسانی هدفونو په تیره بیا دهغه د بشپړ تیایی‌نوی پړاو ددفاع په‌غرض یی‌له خپل قهرمان گوند اوانقلابی دولت‌سره خپل هر اړخیز ملا تړ څرگند کړ .

* * *

د کابل ولایت د میر بچه کوټ ولسوالی دامنیتی قوا و گوندی ملگرو اودانقلاب د مدا فعینو ډلی د هغی ولسوالی دقلمچاق په کلی کی له‌یو شمیر لارو هونکو سره په یوه وسله‌واله نښته کی ځینی کسان وټکول او نور دوه تنه یی ونیول .

له دغو لارو هونکوڅخه چی دسیمی خلکو عادی ژوندیی‌گډوډ اوه له‌زیاتو سندونو سره ډول ډول وسله لاس‌ته راغلی ده .
(ب)

# د ۳۶۲ ربړیدلو کورنیو راستنیدل

د لغمان‌ولایت‌دالیشنگ د ولسوالي دبراوکوز ماتوت‌دکلی یو سلوپنځوس کورنی چی د وینی څښونکی حفیظ الله امین اودهغه دجنایتکار باند دترورا‌و خپه کوونکی واکمنی‌دشرایطو له امله یی خپل کورونه پریښی وو، خپل انقلابی‌او وگړنی‌دولت په صداقت او رښتینوالی باندی په پوره باورسره‌بیا خپلو کورونو ته راستنی شوی .

ذ یوبل خبر له مخی د هرات ولایت دمرکز او مربوطاتو دیټمنو اوزیار ایستونکو خلکو یوسل او دیار لس کورنی چی د حفیظ الله‌امین او دهغه‌د جنایتکار باند د ظلم او تیری له امله دخپلو کورونو پریښودلو ته مجبوری کړای شوی‌وی وړمه‌ورځ خپل هیوادته راستنی شوی .

درانگ په وخت کی ځینو گوندی کدرونو ،کارگرانو او ددولتی دایرو کارکوونکو د اسلام کلا په بندرکی‌د هغوی هرکلی وکړ .

له‌د غوپټمنوخلکوڅخه ځوتنو دثورو په نمایندگی د هرات ولایت له گوندی اودولتی مسوولو کسانو سره د کتلو په‌وخت کی د امین‌او د هغه دخائن‌باند جنایتونه یاد کړل او له دی امله‌یی خوښی وکړه چی‌دثورانقلاب دبشپړتیا نوی پړاو خپل گران‌هیواد ته د هغوی راتگ زمینه برابره کړیده . (ب)

## دنیول شویو فرانسوی په اصطلاح ژورنالیستانو اعتراف:

# زمونږ په کور نیو چاروکی دلاس وهنونوی بیلگه

**(دوهمه برخه)**

**پوښتنه : دافغانستان او شوروی اتحاد پر ضد د فرانسی د تبلیغاتی ماشین په باب ستاسی نظر څه دی ؟**

ځواب : د ۷۸ کال داپریل د ۲۷ نیټی دانقلاب پر سبا ، په فرانسه ، اروپا اوځینو نورو هغو هیوادوکی چی خصلتاً له مترقی ار ما نونواود سوسیا لیزم له نړی سره مخالف‌و د کابل درژیم پر ضد پراخه تبلیغات او پروپاگنډونه پیدا شول. دغه‌پروپاگنډونه سملاسی پراخه شول په تیره بیا په فرانسه کی دفرانسی‌دکمونست گوند دمطبوعاتو پر ته ، د هغی زیاترو مطبوعا تو د یوه انقلابی د آرمانو نو او هیلو په بل ډول ښودلو کی چی له نیکمرغه دبهو خوړلو او دیکتا توری ډیر کلو نه پای ته رسوی فعالیت کاوه البته دغه تبلیغات او پرو پاگنډونه د انقلاب ضد ځینو هغو افغانانو له خوا چی فیوډالی زاړه رژیمو نه یی غوښتل او په پخوا نیو زړو رژیمو نو کی یی افراطی استفادی کړی وی تقویه کیدل د مثال په ډول مونږ په فرانسه کی ډیر زیات اوریدلی چی دافغا نستان وسله وال پوځ او د شوروی اتحاد محدودپوځ په افغا نستان کی د خلکو په وړاندی له کیمیاوی بمونو او مسمو مو نکو بمو نو څخه کاراخلی، پداسی حال کی چی مونږ د خپل سفر په جریان کی هیڅ‌دغه شان عمل ندی لیدلی بلکی بر عکس د سنگین په کلی کی دلومړی ځل‌له پاره اشرارو مونږ ته کیمیاوی او مسمو موونکی وسلی راکړې‌چی په‌خپله یی تری استفاده کو له .

**پوښتنه : خپل لومړی راپور تاژ**

**څنگه بولی او په کو مه خپرونه کــی خپور شویدی ؟**

ځواب : ما خپل لومړی راپور تاژ د ۱۹۷۹ کال د اپریل په میاشت د کونړ په دره کی جوړ کړ او دغه راپور تاژ دافغا نستان د شرایطو په باب دیـو اړخیز او نیمگړی قضاوت ښکارندوی‌و چی البته په هغه وخت کی زه اشرارو تیراستلی وم او هغه خیز ونه یی چی دوی غو ښتل او د هغوی له هیلو سره سم و ماته راوښودل او پدی تو گه دافغا نستان دانقلاب له حقیقت څخه ځما د لیدو خنډ شول .

دغه راپور تاژ په څلورو فرانسو یو ورځپاڼو او د فرانسی د تلویزیون په دویم‌چینل‌اودلویدیز آلمان‌دتلویزیون په دویم چینل کی خپور شو.

دغه راز ما د۱۹۸۰ کال دمارچ‌په میاشت کی په کابل کی درنځو نو په نا مه دافغا نستان په باب یـو کتاب لیکلی دی او خپور شویدی چی اوس متوجه کیږم چی دغه کتاب تر کومی اندازی پوری دافغا نستان دانقلا بی ضد پرو پا گنډونو ښکا رندوی دی .

**پوښتنه : دخپل سفر په جریان کی مو څه ډول نور معلو مات برابر کړل او دکوموصحنو عکاسی موکړی اوفلم مو اخیستی او یا مو خپل راپور تاژ برابر کړیدی ؟**

ځواب : لکه څنگه چی مو په پاریس اوپیښور کی‌او ریدلی و اشرارو داسی ادعا کوله چی ښځی له دوی سره اوږه اوږه په غه برخه کی یی د ختیځ‌آلمان

په اوږه جنگیږي او مونږ له چمن څخه تر کاند لون پوری چی دافغا نستان یو کلې دی ونشو کړی پدغه برخه کـــی معلو مات تر لاسه کړو . پدغه کلی کی اشرارو مونږ ته داسی وښودلــه چی گواکی ښځې په بامونو او برنډو باندی پیره کوی او مونږ هیله وکړه که چیری امکان ولری چی مونږ د ښځو د فعالیت د جریان فلم واخلو . خو شیبې وروسته د کلی له اشرارو څخه یو له دریو ټوپکو سره راغی او دری ټوپك یی دریو پیغلو نجونو ته ور کړل او کله چی مونږ پدی مسله وپو هیدو چی دا یوازې صحنه جوړول دی او رښتیا پکی نشته ، مونږ وغو ښتل چی ددغی صحنی فلم وانه خلو، ځکه امکان‌یی نه‌درلود چی دفرانسی خلك‌دغه‌تصنعی صحنه و منی ، خو اشرارو زیات ټینگار وکړ چی باید د دغی صحنی فلم واخلو او هماغه و چی مونږ وپوهیدو چی دغه کار یوازی دافغا نستان دانقلاب پر ضد تبلیغا تو له پاره یوه وسیله ده اوکوم بل هدف نلری .

ددغی پو ښتنی په ځواب کی چی د افغا نستان په باره کی مو څـه ډول اطلا عات برابر کړی باید ووایو :

په فرانسه او اروپا کی مطبوعات په پراخه اندازه تبلیغ کوی چی دانقلاب ضد په وړاندی دافغا نستان د عسکرو او شوروی عسکرو په‌څنگ کی دوارسا د تړون د غربیو هیواد و عسکر جنگیږي

پولنډ، بلغاریا آوان دکیوبایی عسکرو دشته والی خبری‌کیدی ،مونږ په‌کندهار کی د هغو دوو مر کو په ترڅ کی چی په لشکر گاه کی‌مو له یوه زده کوونکی او له یوه متقاعد ژاندرام سره چـــی کندهار ته زمونږ د لیدو له پاره راتلل دغه پوښتنه مطرح کړه چی آیا د دغو هیوادو عسکر افغا نستان ته راغلی دی مونږ ته مثبت ځواب راکړ شو ، خومونږ په خپله هیڅکله ونشو کړی د دغه‌ډکی په حقیقت باندی وپوهیږو اوپه نتیجه کی را ته څرگنده شوه چی دا همغه‌ډکی دی چی په انقلابی ضد تبلیغاتو کی‌تری کار اخیستل کیږی .

**پوښتنه : ته له نورو هغو بهر نبو ژور نا لستانو سره چی په پټه افغا - نستان ته راغلی وی ارتباط لری‌که څنگه؟**

ځواب : هو د یو شمیر هغو ژور - نالیستا نو د نو مو نو لست چی په‌غیر قانونی توگه افغا نستان ته راغلی او مونږ یی پیژنو تاسی ته درکوو .

۱- دلوپوه استازی حمنشو .
۲- دلو متن استازی اروی چپلا نی.
۳- دلو فیگـــرو استـــازی دژردن
٤- د رندی پاندان استازی ژیروم اریکرادو .
٥- دلونوفه لبرته استازی بلانشی.
٦- دگمه آژانس استازی المنگاو .
۷- دمگنوم آژانس استازی امـدو- پردو.

دغه راز نور زیات ژور نالستان په افغا نستان کی د کار له پاره مو ظف شویدی چی زه هغوی ټول نه پیژنم .

(نور بیا)

**هنری نقد**

# د«شوهربدگمان» تلویزیونی پارچی ته‌یوه کتنه

دتلویزیون ریاست څه موده مخکی دلیدونکو دبیابیا غوښتنی په وړاندی ځواب ورکړ چی دعلم په بنا تلویزیون یوازی یوه تفریحی وسیله نده بلکی وظیفه لری څودجمعی ارتباط دیـوی ستری او نوی وسیلی په توگه دخلکو په ډله ایزه روزنه کی فعاله ونـــډه واخلی .

دغه استدلال په پوره توگه علمـی اوزمونږ دټولنی او انقلاب داړتیاو پـه تناسب وارد اوپه ځای دی . په‌رښتینی توگه تلویزیون دډله ایزی مفا همی دفعال واحد په توگه باید دخلکو په روزلو او د هغوی دپوهی دسطحـی لوړولو او له هغی جملی څخه دخلکو دهنری لید او دلید دسطحی دلوړولو دخلکو دهنری ذوق اوخیږ نی په‌لوړولو کی په فعاله توگه برخه واخلـــی او هغوی دټولنیز ژوند درښتینو جنبـــو سره آشنا کړی او هغوی ته زمونږ د ټولنی‌دبنیادی اوښتونونوپه‌لورسازمان ورکړی .

خوبایـد ولیدل شی چی دغه ټکـی ترکومی اندازی پوری دعمل جامـه اغوستلی شی.

تلویزیون په تیـره جمعه کـــی‌د «شوهربدگمان» په نامه‌یو نمایش‌خلکو ته وړاندی کړ .

ددغه هنری اثر تنظیمونکی‌غوښتل دښځی او میړه ترمنځ اړیکو او هـــم دپلار سالاری دروابطو په ناوړې‌برخه کی یوڅه ورزیات کړی باید ووینو په هغو شرایطو کی چی زمونږ ټولنه باید په افغانستان کی دنوی ټولنی دجوړولو بنسټیزی مسلی حل کړی‌او عملی ټاکلوهدفونوته درسیدومشخصی لاری پیداکړی ترکومی اندازی پوری ضرورت درلود دښځی او میړه پـــه روابطو کی دغه سطحی کتنه چی برله پسی هم پری انتقادشوی دی هغـــه هم دننداری په دغی لاری عنوان‌کیږی مطرح شی .

ددی به تیر شو پدغه ننداره کـــی دتصادفی صحنو ترشا پردی څیر ی او غیر رښتینی اړیکی اوداصلی مقصد تخیلی برخوردونه دپوهیدو وړنه دی اولیدونکی په‌پای کی‌دغه پیغام څخه چی سم ندی تنظیم شوی ډیر گنگ او خړتصویر ذهن ته سپاری دا ملی موضوع دافادی، استدلال او متن‌قوت ډیرکمزوری دی اولیدونکی‌په هیڅ‌ډول دغی قناعت ته نه رسیږی دښځی او میړه په روابطو کی دسطحی‌برخوردونو دناسموالی او د ننداری دلاربښودنـــی له مخی دښځی دمحکومیت دمردودوالی په باره کی دخپل نظرطرز د ســــره جوړه کړی .

دننداری داصلی څیرو څخه یو هـم دهغه څه دافادی لپاره چی مرکـــزی موضوع یی په نظرکی لری مناسب نه دی دبیان لاری چاری ډیری نارسا او «ادیبانه» اود متضادو څیرو برخورد ډیر ورته دی. او ددوو نسلونوترمنځ واټن اودهغوی دپوهی اواړتیاووتوپیر په هیڅ وجه محسوس نه دی اصلـی موضوع دڅیرو دخصوصیت له مخـی بدلیږی او دسر خوش دکرکټر له‌مخی په پوره جلالاره روانیږی دڅیروتگ راتگ ټول په وار اویوپه بل پسـی کیږی ترهغه ځایه پوری چی ننداره دهغه مقصـ لپاره چی پیل شوی‌وه پای ته نه رسیږی او لیدونکی تـری هیڅ پیغام نه شی اخیستی تر ټو لو ناسمه داچی یو تریخ ژوند چی له بد گمانی څخه پیدا کیږی، او شکسپیر هغه ډیره موده پخوا په ډیره لـــوړه سویه ترسیم کړی و په یو کوچنی باغچه کی او هغه هم له پیل څخـه ترپایه پوری دیوی چوکی په گــر د چاپیر پیښیږی او تر ټولو په زړه‌پوری داده چی دوه پستونه هم زمونږدځوانانو په بدبختی باندی دشهادت لپاره‌گمارل کیږی هرڅه دجلی دپلار دسفسطـــی څخه دمبتزل سرخوش ترسر خـوشی پوری دنا جیبی تر بی بنسټه بـاور دحامد تر ډیر نارسا او مـصنوعـی ټینگارپوری او دیودوودناخوښی قضاوت پوری ټول دیوی چوکی په گرد چاپیر پیښیږی اوپه پای کی نجلی او هلك هم دهمغی لوړ مقامه چوکی په‌وړاندی په هغودلیلونو چی داصلی مو ضوع لپاره بیخی پردی او ناوارده دی وحال ته رسیږی او دبیلتون تیاره دوران پای ته رسیږی او پلار خپلـه‌لـور «یوه حاضر او چمتو ځوان ته‌سپاری»!

# ورزش

## دفوټبال اووالیبال په‌زړه‌پوری لوبی

دفوټبال په لوبوکی‌چی پرون دآریا اوکابل پوهنتون ،کابورا او هندوکش دټیمونو ترمنځ وشوه د کابل پوهنتون ټیم ددوپه مقابل کی په دریوبریالی اودکابورا او هندوکش ټیمونه یودیوپه مقابل کی مساوی شول.

دیوبل خبر له مخی د فوټبال په‌هغه لوبه کی چی‌وړمه‌ورځ له غرمی‌وروسته دکار تو گرافی او جیبو دیږی د ریاست او دملی بس داتحادیی‌دټیم ترمنځ دامانی لیسی په ورزشی‌ډگر کی وشوه دکار توگرافی اوجیودیزی ټیم دصفر په مقابل کی په دریو دملی بس په‌ټیم بریالی شو.

دغه راز دوالیبال په لوبو کی چی پرون د کابل په ورزشی لوبغالی کی وشوی د رادیوتلویزیون ټیم‌د ترویج دریاست په ټیم اود کور جوړولو د فابریکی ټیم د برمه کاری په ټیم بریالی شو. (ب)

## دناک اوټ دسیستم دسابقونتیجی

دپو لتخنیك د انستیتوت د لومړیو دوهمو ، او دریمو صنفو سپورتـی گرو پو نو تر منځ د فتبال په هغو مسا بقو کی چی دناك اوټ په سیستم چی د کابل پولی تخنیك په ورزشی لوبغالی کی د بدنی روزنی دیپارتمنت له خوا وشوی پدی ډول دی .

دسی ، ۱۱ گروپ ټیم، د ۲۱ گروپ پرټیم بریالی شو.

د۳۲ گروپ ټیم دسی ۲۱ گـروپ په ټیم بریالی شو .

د۳۲ گروپ ټیم د ۱۱ بی گـروپ د ټیم سره مساوی

د سی ۲۱ گروپ ټیم دبی ۱۱گروپ د ټیم په مقابل کی مسابقی ته‌حاضر نه شو له دی امله‌د سی ۲۱ټیم‌مغلوب وگڼل شو.

دکابل پولی تخنیك د انستیتوت دبدنی روزنی د دیپار تمنت یوی‌منبع وویل : سږ کال د سی ۱۱ گروپ او ۳۲ گروپ ټیمو نه د هغو ښولوبو له امله چی یی وکړی په وروستـی دورکی ځای ونیو چی دمنی‌دتور نمنت د مسا بقو په جریان کی به د هرټیم سره لوبو ته حاضر شی فعلا دهواد خرابوالی له امله د منی دتور نمنت لوبی پیل شوی نه‌دی، چی ښایـی په څو راتلو نکو ورځو کی‌پیل‌شی.

## دا.د.ج.ماشومانو هنری آثارو جایزی وگټلی

په جاپان کی د ماشومانو د هنراو آرت په‌بین‌المللی‌لوبه‌کی د افغانستان ددیموکراتیك جمهوریت د لومړنیـــو ښوونځیو دزده‌کوونکو د اوولسوهنری اثر ونو له جملی څخه نهه اثرونه د سرو زرواوسپینوزرو د جایزومستحق شویدی .

په دغو هنری جایزو کی د سروزرو یوه ځانگړې جایزه د سرو زرو دوه جایزی او دسپینو زرو شپږ جایزی شته دی.

دغه جایـزی د آثارو ښـښتنا نوته وویشل شوی ددیر زیات ویاړ ځای دی چی زمونږدانقلابی دولت په‌پاملرنه نن زمونږ دهیواد یوشمیر ماشو مان‌په بین‌المللی لوبو کی برخه اخلـی‌او د استعداد په ښودلو سره خپل ځان‌او خپل هیوادته ستری ویاړنی گټی.

# ددرواغو په خپوکــی ...!

## ژورخوب !؟

«یو نا پتهه پرس .. رپوټ ورکړ په سل گو نو شوروی سر تیری د کابل په مر کز کی له مسلما نـــو مبارزینو سره په یوه دوه ورځنـــی جگړه کی (لکه چی‌دیونایتـد پـــرس مقصد د باغ عمومی د پله سیمه یا د هغه شاو خوا ده) مړه شول .

مسلما نو مبارزینو (ولی نه وایی داسلام ضدرذیلان) پدغه رپوټ‌کـی وویلی الو تکو ښار او کلـی( دکابل د مر کز کلی!!) بمباری کړل چـــی د هغو په نتیجه کی پنځوس تنه ملکی کسان مړه شول .»

(د ایران رادیو د عقرب ۸ دپنج شنبی له غرمی وروسته دری بجـــی) مونږ هیڅ هیله نه در لوده چی‌دومره ستر آژانس دو مره کوچنـی درواغ ووایی . څه ناڅه دو مره خو یی‌کولای شول چی ستر درواغ ووایی .آیازمونږ

له هیواد څخه به بهر هم څوك پدی خبره باور وکړی !!! .

## کله‌چی د لیل نه‌وی !

«د پاکستان‌جمهوررئیس‌ضیاء الحق وویل چی دپاکستان خلك بـه ددی موقع پیدا کړی چی خپل نمایندگان وټاکی ، خوپه روانو شرایطو کی د نړیوالو حالاتو له امله د دغه شان انتخاباتو کیدل‌نښه‌اومساعد نه دی...»

بی‌بی‌سی ساعت ۷٫٤٥دعقرب٤یکشنبه

یوځوك ملانصرالدین ته‌لاړ اوله هغه نه‌یی بیل وغوښت. هغه ځواب‌ورکړ: «مونږ‌په بیل کی ماسته تومنه‌کړیدی» پوښتونکی حیران شو اوپوښتنه‌یـی وکړه.

آیا په‌بیل‌کی‌هم ماسته تو منـه کیږی ؟ ملانصرالدین وویل : ښه که بهانه غواړی خو همدغه پلمه ده ...! لکه‌چی‌معلومیږی ضیاء الحق په‌دلیل ویلوکی‌دملانصرالدین لاسونه شاته تړلی دی.

# معلومات

## تلویزیون

**چهارشنبه :**

۶٫۰۰- دتلویزیون آرم، دماشومانو پروگرام اوکارتونی فلم .
۷٫۰۰- دری خبرونه ، ښځه‌اوټولنه
۸٫۰۰- پښتو خبرونه ،
۸٫۳۰- ځواب څه دی ؟
۹٫۰۰- دشری‌بی‌بی تلویزیونی‌سریال

**پنجشنبه :**

۶٫۰۰- دتلویزیون آرم، موعظه، دځوانانو پروگرام .
۶٫۳۰- ورزش
۷٫۰۰- دری خبرونه ، رنگا رنگ موسیقی .
۸٫۰۰- پښتو خبرونه
۸٫۲۰- راپور تاژونه
۸٫۳۰- هنری فلم

## رادیو

**چهار شنبه :**

۱۰٫۵- کیلوالی سندری اونغمی
٤٫۵- علمی خپرونه
۵٫۵- راپورتاژونه
۹٫۰۰- ځوانان
۱۰٫۵- دنړی ادبی شاهکارونه .
۱۱٫۰۰- بزم غزل

**پنجشنبه :**

۱۰٫۵- ددوستانو آواز
۱۲٫۵- ستاره های از کهکشان موسیقی .
٤٫۳۰- اقتصادی خپرونه
۵٫۵- د جوانه هاپه نا مه تنکیو ځوانانو پروگرام
۹٫۰۰- موعظه اورادیو درام
۱۰٫۵- دشومه دم انگازی
۱۱٫۰۰- موسیقی رنگا رنگ ازپنج قاره جهان

## تیلفون

### دگوندی مرکزونو تلیفونونه

| | |
|---|---|
| دمرکزی کمیتی دارالانشاء | ۲۶۲۵۵ |
| مرکزی کمیته (سوچبورد) | ٤-۲۵۷٤۱ |
| دمرکزی کمیتی دشپی نو کریوال | ۲۶۵۳۸ |
| ښهری کمیته | ۲۳۵٤۳ |
| دکابل ولایتی کمیتی | ۲۶۶۸٤ |

### گوندی ناحیی

| | |
|---|---|
| لمړی (الف) ناحیه | ۲۰۸۲۷ |
| اهړی (ب) ناحیه | ۲٤۷۶۲ |
| دوهمه ناحیه | ۳۰۵۷۰ |
| دریمه ناحیه | ۲۰٤۵۸ |
| خلورمه (ب) ناحیه | ٤۲۲۷۸ |
| پنځمه ناحیه | ۳۱۷٤۱ |
| (۶-۷-۸) ناحیه | ۲۱۸۹۲ |
| (۹- ۱۰) ناحیه | ۲۳۳۵۷ |
| یولسمه ناحیه | ۳۱۶۵۱ |
| دولسمه ناحیه | ٤۱۸۵۲ |
| دپوهنتون ناحیه | ٤۲۳۹۵ |
| دځوانانو دموکراتیك سازمان | ۲۳۹۹۶ |
| دښځو دموکراتیك سازمان | ۲٤۵۸۰ |
| دکابل ولایت نوکریوال | ۲۰۷۰۰ |
| -ترافیك | ۲۲۰٤۱ |
| -دجمهوریت روغتون عاجل سرویس | ۲۱۱٤٤ - ۲۶۷٤٤ |
| داکبر خان روغتون عاجل سرویس | ۲۶۷۵۱ |
| علی آباد | ٤۰۲٤۲ |

### دخارندوی ما موریتو نه

| | |
|---|---|
| ایوبخان | ٤۲۶۰۰ |
| نوی ښار | ۳۰۰۵۲ |
| سیدنور محمد شاه مینه | ۲۵۲۵۱ |
| خلورمه کارته | ٤۱٤۰۰ |
| اطفائیه | ۱۳ |

دتحریر هیات ترنظرلاندی
مسؤول‌مدیر- محمودبریالی
پته - دستوری مانی
پستی صندوق - ۷۸۰
تیلفون - ۲۰۸٤۰
دیکشنبی ، سه شنبی او پنجشنبی په ورځو خپریږی
بیه -۲- افغانی